# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ٦٧٧ ګڼه / شنبه ۰۹ شعبان‌المعظم ۱٤٤٦ هـ.ق / د سلواغې ۲۰ مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۰۸ فبروري ۲۰۲۵ میلادي


## د وزارتونو او لویو ادارو هېڅ کوم سیستم نه دی هک شوی

د مخابراتو او ټیکنالوژۍ وزارت په یوه اعلامیه کې راغلي چې چا د وزارتونو او لویو ادارو سیستم نه دی هک کړی او دولتي اسناد خوندي دي. دغه وزارت یادې اوازې په کلکه رد کړې او ویلي یې دي: ښايي ځینې اسناد چې له بشپړ خوندیتوب برخمن نه و، په یوازې ډول اخیستل شوي وي، چې لا پخوا خلکو ورته لاسرسی درلود. د مخابراتو او معلوماتي ټکنالوژۍ وزارت ډاډ ورکړی چې د دولتي ادارو ټول سیستمونه خوندي دي او د معلوماتو ملي مرکز (ډاټا سنټر) هم له هر ډول لاسرسي خوندي دی. یاده دې شي چې په دې وروستیو کې ویل شوي و چې د هکرانو یوې نامالومې ډلې د افغان حکومت د شاوخوا شلو وزارتونو او ادارو اسناد غلا کړي دي.

## میدان وردګو کې د وسپنې ویلې کولو ستره فابریکه جوړېږي



د میدان وردګو ولایت مرکز میدان ښار په کوټه عشرو سیمه کې د وسپنې ویلې کولو د یوې سترې فابریکې د جوړېدو هڅې پیل شوي دي. د دې فابریکې د فعالیت په موخه هندي پانګوال انجینر لوکیش کومار او د میهن سټیل مسئولینو د دغه ولایت له والي قاري بختیار معاذ سره کتلي دي. په دې لیدنه کې هندي پانګوال د یادې فابریکې پر اهمیت هر اړخیزې خبرې کړې او ویلي یې دي پلان لري، چې په میدان وردګو ولایت کې د وسپنې ویلې کولو په برخه کې شاوخوا ۲۰۰ میلیونه ډالره پانګونه وکړي.د کومار په وینا په جوړېدونکې فابریکه کې به خامه... ۳مخ

## ننګرهار کې د وچ خوړ بند چارې پیل شوې

د ننګرهار په حصارک ولسوالۍ کې د وچ خوړ بند جوړولو چارې د ۳۵ میلیونه افغانیو په لګښت د یاد ولایت د والي مرستیال مولوي عزیزالله مصطفی او د ګڼو ځایي مسئولینو په شتون کې د پیل پرانیسته وشوه.ځایي مسئولین وايي، د یاد بند چارې د دوو همکارو بنسټونو په مالي مرسته جوړېږي، چې چارې به یې د یو کال په لړ کې بشپړ شي.دغه بند په ۶۸ متره اوږوالی، ۹ متره... ۳مخ



## بدخشان کې د څه باندې ۱۴۰۰ جریبه ځمکې ارزونه شوې



د بدخشان د ځمکو له غصب د مخنیوي تخنیکي پلاوي د مرکز فیض اباد ښار اړوند د اوومې ناحیې د خمچان دښتې په سیمه کې د ۱ زر ۴۳۰ جریبه ځمکې په اړ بحث او خبرې شوې دي.یاد پلاوي د غونډې په ترځ کې پرېکړه کړې، چې د دې ځمکې په تړاو املاکي څېړنې وشي او دوسیه یې تر بشپړېدو وروسته، د وروستۍ پرېکړې په موخه مرکزي کمېسیون ته ولېږل شي. د عدلیې وزارت د خبرپاڼې له مخې، په دې ناسته کې د ځمکو د غصب اړوند یو شمېر نورې دوسیې تر برسي لاندې نیول شوې او په تړاو یې لازمې پرېکړې هم شوې دي.

## فراغت ۲۵۰ منسوب جوان اردوی اسلامی و ملی از قول‌اردوی ۳۱۳ مرکزی



وزارت دفاع ملی می گوید، ۲۵۰ تن از منسوبین جوان اردوی اسلامی و ملی از یک دوره آموزشی از قول‌اردوی ۳۱۳ مرکزی فارغ شدند. به گفته وزارت دفاع ملی، منسوبین یادشده از دوره آموزشی دونیم ماهه در بخش تعلیم‌وتربیه سند فراغت بدست آورده‌اند. ملا محمد محفوظ مجاهد، معاون قول‌اردوی ۳۱۳ مرکزی در مراسم فراغت منسوبین تازه فارغ‌شده بر آموزش، مسوولیت‌پذیری، رفتار و رعایت نکات اخلاقی با مردم تاکید کرده است... ص۳

## سرمقاله

### هر چارواکی دې ځان د خپل رعیت خادم وګڼي !

د اسلام مبارک او سپېڅلي دین په لارښوونو کې د الله تعالی د بندګانو پر حقونو زښته ډېر تأکید شوی، په ځانګړې توګه کله چې د آمر او رعیت تر منځ د اړیکو موضوع وي– دا په دې معنا چې کله څوک پر یوه ولسي پرګنه یا کوم لوی ملت د حاکم، والي، امیر، خلیفه یا لږ ترلږه پر ایکي یو کس د آمر په توګه ټاکل شوی وي، نو مسئولیت او مکلفیت یې خورا ډېر دی– بناءً پردې موږ چې د یو متدین مسلمان ملت په توګه د اسلام په لارښوونو کلک ایمان او باور لرو، لازمه ده چې مشران مو په هېڅ صورت او هېڅکله خپله دغه ذمه واري له یاده و نه باسي– یعنې هر حکومتي چارواکي ته په کار ده چې ځان د خپل رعیت خادم وګڼي او دې ته هم متوجه وي، چې که هر څومره یې منصب لوړ او ډېرو خلکو پر سر حاکم وي، په هماغه کچه یې مسئولیت او ذمه واري هم زیاتېږي او درنېږي– بیا نو کله چې د یو حاکم پر ذمه د خپل رعیت خدمت لازم شو، باید هېڅکله هغه ورځ له یاده ونه باسي چې د الله تعالی د عدالت په میدان کې به د همدغو تر لاس لاندې رعیت لاس وي او د ده ګرېوان. حاکمان باید له خپل رعیت سره رښتیني وي، په پوره صداقت چلند ورسره وکړي، د نیکۍ او ګټې په لور یې وهڅوي، دولتي اسباب او وسایل یوازې د خپل ځان د سوکالۍ لپاره استعمال نه کړي، بیت المال کې له خیانته په کلکه ځان وساتي، د مالیاتو، ټیکسونو، عشر او زکات راغونډولو کې پر خلکو شفقت وکړي او په تېره د هغو اسنادو پروسه ورته اسانه کړي چې د همدې حکومتي قوانینو پر اساس پر عوامو جبري شوي دي. لکه د تذکرو اخیستل، پاسپورټ جوړول، د مختلفو چارو او فعالیتونو لپاره جوازونه تر لاسه کول، د تعلیمي اسنادو چمتو کول، د ترانسپورټي مقرراتو اجراء کول، عدالتي خدمات او داسې نور هغه موارد چې هم د حکومت له لوري پر خلکو لازم شوي او هم یې له همدې سر کاري ادارو تر لاسه کول زیات مالي لګښت، ډېر وخت، اوږدې منډې ترړې بلا ستومانۍ او په هره دروازه کې هر کس و نا کس ته زښته ډېرې زارۍ او عذرونه غواړي – تردې چې که سړی د ایمان او تقوا په رڼا کې خپل ځان سره مراقبه او محاسبه وکړي نو باوري به شي چې ښايي سبا د قیامت په ورځ دا ټول حکومت یوازې د هغه کس د ځورېدو ځواب هم ورنه کړی شي کوم چې د یو عادي سند یعنی تذکرې په اخیستو کې خپه شوی یا هغه چې امنیتي پوستو او حوزو کې په ناحقه کومه لښته او لغته وهل شوی وي. مطلب دادی چې حکومتولي خورا ستره ذمه واري، ډېر دروند مسئولیت او د قیامت د ورځې لویه شرمندګي او سخته پښېماني ده – پر دې اساس هر مسئول او چارواکي ته لازمه ده چې ځان د خلکو خادم او خپل منصب یو ډېر خطرناک امتحان وګڼي او هېڅکله هغه ساعت هېر نه کړي چې بیا د خپل خالق او مالک پر وړاندې د ذرې، ذرې حساب ورکوي.

## خوست کې ۵۰۰ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرې شوې



د خوست ولایت د کلیو، بیارغونې او پراختیا ریاست مسئولین وايي، چې د دغه ولایت په مرکز متون ښار کې د څه باندې ۹ میلیونه افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د درېیو شبکو په ګټې اخیستو سره څه باندې ۵۰۰ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرې شوې دي.
سرچیني باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دغه ولایت مرکز متون ښار په درېیو سیمو کې د (ان. سي. اې) موسسې په مالي ملاتړ د ۹ میلیونه ۵۵۹ زره ۱۷۹ افغانیو په لګښت د اوبو رسولو د درېیو شبکو په جوړېدو سره د سیمې ۵۲۶ کورنیو ته د څښاک اوبه برابرې شوې دي.
سرچیني زیاته کړې، چې یادې شبکې د ۵ میاشتو په موده جوړې شوې دي او پرمټ یې د سیمې لسګونه کسانو ته د کار زمینه هم برابره شوې وه.

## بدخشان کې د چرګانو ۳۰۰ فارمونه فعال دي



بدخشان کې د چرګانو ۳۰۰ فارمونه فعال دي د بدخشان سیمه ییز چارواکي وايي چې په دغه ولایت کې د چرګانو د پالنې ۳۰۰ فارمونه شته، چې شاوخوا ۹۰۰ زره چرګان په کې روزل کېږي.د بدخشان د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست د مالدارۍ آمر ویلي، چې د دې فارمونو له لارې نه یوازې د غوښې اړتیاوې پوره کېږي بلکې لسګونو تنو په کې کارموندنه هم شوې ده.
نوموړي وړاندې ویلي: له یادو فارمونو څخه په ۴۰ ورځو کې څه باندې ۲ زره ۲۶۳ ټنه او په ورځنۍ ډول ۵۶ ټنه د چرګ غوښه او په سلګونه زره هګۍ بازار ته وړاندې کوي.

## په یک رویداد ترافیکی در سمنگان ۳ تن جان‌باخته و ۱۱ تن دیگر زخم برداشت

مسئولان ترافیک ولایت سمنگان می گوید که از اثر تصادف یک عراده موتر نوع ۵۸۰ با یک عراده موتر نوع تونس در مربوطات پل حضرت سلطان در ولایت سمنگان، ۳ تن جان‌باخته و ۱۱ تن دیگر به شمول کودکان، مردان و زنان زخم برداشته اند. به گفته مسئولان ترافیک این ولایت، زخمیان به منظور تداوی به شفاخانه ولایتی منتقل شده اند. مسئولان همچنان علت این حادثه را بی احتیاطی رانندگان عنوان نموده و گفته اند که قضیه تحت بررسی قرار دارد. گفتنی است که رویدادهای ترافیکی در این اواخر جان ده‌ها تن را گرفته و بیش از صدها تن در این رویدادها زخم برداشته اند اما دلیل اصلی این گونه رویدادها را مسئولان بی احتیاطی راننده‌گان عنوان کرده است.

## تخار کې ګڼې وسلې او مهمات ترلاسه شوي



۲۱۷ عمري قول‌اردو وايي، چې د تخار په مرکز ښار کې د کشفي، استخباراتي دفاعي او امنیتي ځواکونو ګډ تصفیوي عملیات کړي دي یادې قول‌اردو په خپله ایکس پاڼه ویلي، چې د دې پلټنو په ترځ کې ۱ میل روسي راکټ له ۷ مرمیو سره، د روسي نارنجک ۱۵ مرمۍ، د کلاشنکوف ۲ بکسه مرمۍ، ۲ امریکایي دودي... ۳مخ

# تبلیغاتي او فکري جګړه دسیسه که فکري یرغل؟

**محمد قاسم عزام**

په معاصر دور کې جګړې یــوازې په فزیکي ډګر کې نه ترسره کېږي، بلکې د رسنیو، ټولنیزو شبکو او تبلیغاتو له لارې یو پټ، خو خطرناک یرغل روان دی. دا هغه جګړه ده چې پکې د ټوپک پــر ځای قلم، د بم پر ځای کیبورډ، او د فزیکي اشــغال پر ځای افکار اشــغالېږي. دسیســه جوړوونکي هڅــه کوي چې د دروغو، افواهو او ناســم تبلیغاتــو له لارې د نظام پر وړانــدې فکري بې باوري ته لاره هواره کړي. دا ډول جګړه، که په سمه توګه ونه شنل شي، کولی شي د یو ملت د فکري او ســیاسي ثبات ســتنې ولړزوي.تبلیغــاتي جګړه یــوازې د دې لپاره نه وي چې یو نظام کمزوری کــړي، بلکې هدف یې دا وي چې د خلکو ذهنونــه داســې تخریب کړي چــې هغوی د خپــل نظام، رهبرۍ او اســاسي ارزښــتونو پر وړاندې بې اعتماده شي. دا کار د رســنیو، ټولنیزو شبکو، کتابونو، هنري آثارو، او حتی د تعلیمي نصاب له لارې ترسره کېږي. د عامو خلکو د ذهنونــو کنټرولولــو لپــاره مختلــف تاکتیکونه کارول کېږي. ځینې رسنۍ د حقایقو تحریف ته ترجیح ورکوي، ځینې یې د احساســاتو په پارولو تمرکز کوي او ځینې بیا د یوه خاص فکري مکتب یا ســیاسي اجنډا د ترویج لپاره منظم پروپاګنــد مخته وړي.افواهــات د تبلیغاتي جګړې یــوه بلــه خطرناکه وســیله ده. یوه بې اساســه خبره چې قصداً د خلکو ترمنځ خپرېږي، کولی شي یو نظام ته ســتر ګواښ پېښ کړي. د افواهو جوړوونکي هڅه کوي چې د خلکو ترمنــځ بې باوري زیاته کړي، د رهبرۍ مشروعیت ته زیان ورسوي او د عامو وګړو احساسات د نظام پر ضد راوپاروي.دا ډول شــایعات معمولاً د ناپوهۍ، احساساتي توند غبرګون، یا قصــدي تبلیغاتي هڅو له لارې خورېږي. ځینې افواهات د ناســمو معلوماتــو د خپرولو له امله پیدا کېږي، خو ځینې بیا د سیاسي، استخباراتي او ایدیولوژیکو کړیو له لوري د عامه ذهنیــت د کنټرول لپاره تنظیمېږي. پــه ډېرو مواردو کې، دا شــایعات د حقیقت د تحریف، د خبرو د لویولو، یــا د نیمګړو معلوماتو د خپرولو له لارې د خلکــو باورونه متأثر کوي.همداراز، د ټولنیزو شــبکو پراخوالی د دې لامل شــوی چې هر څوک د خبر جوړولو او خپرولــو واک ولري، پرته لــه دې چې د معلوماتو کره والی وڅېړي. د عامو خلکو بې باوري او احســاساتي توند غبرګون د دې ســبب ګرځي چې افواهات لا پســې چټک خپــرې شي او د نظــام فکري قوت ته زیان ورســوي. کله چې د ټولنیزو شــبکو پراخوالی تــه وګورو، نو وینو چې نن ســبا د هر چا لپاره اسانه ده چې بې له کومې سرچینې، یــو خبر جوړ کــړي او زرګونو خلکو ته یې ورســوي.د دې جګــړې بله مهمه برخه دا ده چې د نظام پر وړاندې د بدبینــۍ فضا رامنځته شي. کله چې یــو ملت پر خپل نظام باور له لاســه ورکړي، نو دسیســه جوړوونکو ته اســانه کېــږي چې داخلي بې ثباتي رامنځته کړي. د دې لپاره، دوی هڅــه کوي چې د رهبرۍ پر وړتیاوو شــکونه پیدا کړي، د حکومتدارۍ هره مثبته لاســته راوړنه تر ســوال لاندې راولي او د خلکــو پام یوازې ســتونزو ته واړوي.په ډېرو مواردو کې، دا منفي تبلیغات دومره هوښــیارانه تنظیمېږي چې خلک د خپلو ســترګو لیــدلي پرمختګونه هم له پامه غورځــوي. که څه هم چــې نظام د بنســټیزو اصلاحاتو، اقتصــادي ودې او ټولنیــز ثبات لپاره مهمــې پروژې عملي کوي، خو دسیســه جوړوونکي د خلکو فکرونه داســې منحرفوي چې دا لاســته راوړنې ورته بې‌ارزښته ښکاري.د بېلګې په توګه، که یوه ســتره اقتصادي پروژه لکه د لویو بندونو، سړکونو او صنعتي زونونو جوړېدل بشــپړې شي، د نظــام مخالفان به یا دا خبر لــه پامه وغورځوي یا به یې داســې تعبیر کړي چې ګواکــې دا ټولې چارې د نظام نه، بلکې د بهرنیو فشــارونو یا اقتصــادي مجبوریتونو له امله ترسره شــوي. همداراز، که امنیتي وضعیت ښه شي، دوی بــه هڅه وکړي چې د شــته کوچنیو پېښــو یادونه وکړي او د ټولنــې د ارامۍ او ثبات احســاس لــه منځه یوسي.دا ډول تبلیغــاتي حربې یوازې د مســتقیمو انتقادونو له لارې نه ترسره کېږي، بلکې ځینې وختونه د غربي او ســیکولر فکــر لرونکو نظریاتو په خپرولــو سره، د خلکو ذهنونه تدریجاً له خپــل ملي هویت، دیني ارزښــتونو او تاریخي ویاړونو څخه پردي کوي.تبلیغاتي او فکري جګړه یوازې د نظام مسئله نــه ده، بلکې دا د ټولنې د فکري ســلامتۍ مسئله ده. که د یو ملــت فکر یرغمل شي، نــو حتی که فزیکــي جګړه ونه شي، هــم دغه ملت به خپــل ثبات له لاســه ورکــړي. د دې خطرناک یرغل مخنیــوی یوازې د امنیتي تدابیرو له لارې نــه کېږي، بلکې د عامه پوهاوي، د کــره معلوماتو د خپرولو، د رســنیو د ســالمې روزنې او د ملي هویت د ســاتنې لــه لارې یې مخنیــوی ممکن دی. کــه د تبلیغاتي جګــړې پر ضد منظمه مبــارزه ونه شي، نو دا جګړه بــه د ټولنې له فکري تخریــب څخه راپیلېږي، ســیاسي بې ثباتۍ ته به ورسېږي او په پای کې به د نظام د کمزورۍ کېدو لامل شي.

# نه بښونکی قساوت

**سلطان جان خاکسار**

ښــایي دا په بشري تاریخ کې له ټولو نادره پېښه وي، چې لومړی دی یو څوک ستا په خاوره کې مېشتېږي، ستا پر خــاروه ابادي کوي، د یوه هېواد بنســټ ږدي او بیا تاته خپل کور سره تبۍ ګرځوي او حتی په خپل کور کې دې بې کوره کوي.

د غزې په اړه د امریکا نوي ولســمشر ډونالډ ټرمپ ویلي چې غزه به له فلسطینیانو تصفیه کړي، هغوی به په اردن او مصر کې مېشــت کړي او د غــزې واک به امریکا په لاس کې واخــلي او هلته به امریکایي ځواکونه ځای پر ځای شي.

د ټرمپ دغه څرګندونې د یوې خطرناکې ســناریو نښې لري.

نوموړي د غزې د بشــپړ تخریب او د فلســطینیانو د بې ځایــه کولو پلان یوازې یو عادي نظر نه؛ بلکې یو منظم استعماري اقدام ښکاري.

د ټرمپ په هغه څرګندونو کې چې د صهیونیست رژیم لومړی وزیر بنیامین نتانیاهو یې هم سپیني مانۍ ته بللی و ویلي چې د غزې ټول اوســېدونکي بــه مصر او یا هم اردن ته انتقال کړي او غــزه کې به امریکایي ځواکونه ابــادي وکړي. که څه هم ټرمپ په ښــکاره وایي چې دا سیمه به ابادوي او پر یوه نړیواله ګرځندوی سیمه به یې بدلوي خو اصلي موخه یې دا ده چې څنګه د فلسطینیانو هویت مســخه کړي او د دې سیمې د اصلي اوسېدونکو ویاړونه وتروړي.

دغه راز پــه دې کارسره غواړي امریکا تــه پلمه برابره کړي، چې هلته پوځي حضور پراخ کړي او اسرائیلو ته د غزې د نیولو قانوني توجیه ورکړي.

د غزې جغرافیایي او ستراتیژیک اهمیت ته په کتلو دغه سیمه عادي سیمه نه ده؛ بلکې له لوړ ستراتیژیک اهمیت څخه برخمنه ده،دغه ســیمه اوبو ته ازاده لاره لري او د منځني ختیځ یو مهم ستراتیژیک مرکز دی.

غزه د مدیترانې ســمندر ته مســتقیم لاسرسی لري، چې دا اسرائیــل ته د لویــو بندرونو د جوړولــو او اقتصادي پراخــوالي یو مهــم فرصت ورکوي. اوســمهال داســې حدسونه هم شته چې که خدای مه کړه فلسطینیان بېځایه شي نو اسراییل به دا ځل آن د مصر ســینا سارا ته ځانونه ورسوي.

## د ټرمپ ګواښ ته غبرګونونه

د اســلامي امارت په ګډون د نړۍ ګڼو اسلامي او کفري هېوادونــو د ډونالډ ټرمــپ دې طرحې ته غوڅ غبرګون ښودلی دی. د اردن حکومت په ډاګه کړې، چې دا طرحه نه یوازې د دوی ملي ګټو ته زیان رســوي بلکې د ســیمې امنیتي ثبات هم ګواښي.

مصر هم ورته دریځ خپــل کړی او اعلان یې کړی، چې دوی د فلسطینیانو د جبري کوچېدو لپاره هېڅ ډول ځای یا امکانات نشي برابرولی.

پــه اروپایي هېوادونو کې د البانیــا حکومت د ۱۰۰ زرو فلسطینیانو د انتقال په اړه خپاره شوي راپوروته په کلکه رد کړي.

د ملګرو ملتونــو د عمومي منشي ویاند دې طرحې ته په کلکه غبرګون ښــودلی او اعلان یې کړی، چې د غزې د خلکو جبري بې ځایه کول د بشري حقونو ښکاره نقض دی او دا ډول کړنې د یوه نسل د ورکولو استازولي کوي.

ملګــرو ملتونو زیاته کړې، چې د فلســطینیانو د حقونو نقض، د دوی کلتوري او تاریخي هویت له منځه وړل او د غزې د خلکو جبري بې ځایه کول له نړیوالو قوانینو سره په ټکر کې دي.

د فلسطیني جهادي ډلو، په ځانګړې توګه حماس دا طرحه د اشغالګرو د یهودي دولت د خطرناکو موخو یوه برخه ګڼلې ده.

د اســلامي هېوادونو د همکارۍ سازمان د غزې په اړه د امریکا د ولسمشر ډونلډ ټرمپ د وروستیو څرګندونو په اړه ډېر سخت غبرګون وښود.

د اسلامي همکارۍ ســازمان د امریکا د ولسمشر ډونلډ ټرمپ د غزې له ترانګې څخه د فلسطیني خلکو د ایستلو، د فلســطیني سیمو په اړه د اسراییلو د ادعا شوي حاکمیت ملاتړ او د ملګرو ملتونو د نړدې ختیځ کې د فلســطیني کډوالــو لپاره د مرســتې او کار ادارې ته د تمویل ځنډول وغندل.

په هغه اعلامیه کې چې د اســلامي همکارۍ سازمان په ویــب پاڼه کې خپره شــوې، یادونه شــوې چې د ټرمپ څرګندونې به د فلســطین د ځمکو د اشــغال، استعماري میشــت ځایونو او غصب لامل شي. دا د نړیوال قانون او د ملګرو ملتونو د اړوندو پرېکړو، په شــمول د ملګرو ملتونو د امنیت شورا د ۲۳۳٤ پرېکړه لیک، د اصولو څخه ښکاره سرغړونه ده. دا ډول څرګندونې او دریځ د سولې چانسونه له منځه وړي او په سیمه کې بې ثباتۍ ته زمینه برابروي.

پــه اعلامیه کې په کلکه د هر هغه پلان غندنه شــوې او رد شــوی چې موخه یې د نیول شــویو فلســطیني سیمو جغرافیایي، ډیموګرافیک یــا قانوني حالت بدلول وي او ټینګار شــوی چې د غزې ترانګه د نیول شویو فلسطیني سیمو یوه نه بېلېدونکې برخه ده.

په اعلامیه کــې د جامع او دوامــداره اوربند، د اسراییلو بشــپړ وتلو، په خپلــو ځمکو کې د فلســطینیانو د هوډ پیاوړتیا او خپلو کورونو ته د دوی د خوندي راســتنېدو، د بیړنیو مرستو چمتو کولو، د غزې ترانګې ته د اقتصادي بیارغونې او د فلســطیني خلکو پر وړاندې د اسرائیلو د ټولو جرمونو لپاره د مسؤل ګڼلو لپاره د ګډو هڅو غوښتنه شوې ده.

په اعلامیه کې په منځني ختیځ کې د فلسطیني کډوالو لپاره د مرســتې او کار د ادارې د مرکزي او نه بدلېدونکي رول لپاره د ســازمان کلک ملاتړ بیا تکرار شوی او ویل شوي چې د فلسطیني کډوالو د حقونو او په سیمه کې د ثبات د عنصر لپاره د نړیوال هوډ د شاهد په توګه په منځني ختیځ کې د فلسطیني کډوالو لپاره د مرستې او کار د ادارې شتون یــا قانوني واک کمزوری کولو هر ډول هڅه په کلکه رد کړې.

## اسلامي هېوادونه څه کولی شي؟

زما پــه نظر د غزې د موضوع د ګټــې او تاوان باریک وخت رارســېدلی دی او همدا یې وخــت دی چې له دې موضوع د سر په بیه دفاع وشي.

که اســلامي نړۍ د غزې موضوع جدي و نه نیسي، نو د فلسطین قضیه به د تل لپاره راونغاړل شي او بیا به څوک د غزې نوم هم وانخلي او له دې سره به د مســلمانانو پاشلتیا لا زیاته شي.

اســلامي هېوادونه دې پــه نړیواله کچه فشــار راوړي، ملګري ملتونه، د اسلامي همکاریو سازمان او نور نړیوال بنســټونه باید دا مسئله رسمي کړي، تعقیب یې کړي او د ټرمپ د طرحې مخه باید ونیسي.

مــصر او اردن باید ښــکاره دریځ ونیسي، چــې دوی به د فلســطینیانو د بې ځایه کولو لپــاره ځمکه ورنه کړي؛ سعودي عربستان، ترکیه، قطر او نور باید د فلسطینیانو د پایښت لپاره مالي او سیاسي ملاتړ زیات کړي؛ د فلسطین مقاومت باید پیاوړی شي، د حماس او نورو مقاومتي ډلو ترمنځ اتحاد پیدا او خپلې دفاعي ستراتیژۍ غښتلې کړي.

عام مســلمانان باید د غــزې د دفاع لپاره فشــار راوړي، مظاهرې وکــړي او خپل حکومتونه دې ته اړ باسي، چې جدي اقدام وکړي.

بله تر ټولو مهمه له اسراییلي سره د سوداګریزو او تجارتي اړیکو پرېکون دی. په خواله رســنیو کې باید په پراخه کچــه کمپاینونه وشي چــې ټول اسراییــلي تولیدات باید تحریــم شي او دا کار باید د فلســطین د مظلومو خلکو ملاتړ باید عملي شي.

ښــایي ځینې فکر وکړي چې فلسطین خو ټول له خاورو سره برابر شو او په دومره لوی تاوان دا جګړه نه ارزېده. باید ووایو چې فلسطینیانو دا دومره لویه قرباني د خپل او ټولې اسلامي نړۍ د حیثیت د ساتلو لپاره ورکړې او هغه پــه دې مانا، چې د یهودو پر وړاندې د فلســطینیانو پاتې راتلل یواځې د فلسطین ناکامي نه ده؛ بلکې د ټولې اسلامي نړۍ ناکامي بلل کېږي.

او تر دې ورهاخوا له ټولو ســتر کار د صهیونیست رژیم د ضعف ښــکاره کېدل و او هغه ډوزې یې ښکارول وو چــې بویا په نړۍ کې یوازې دوی زبرځواک دي، د نړۍ له ټولو قوي استخبارات لري، پوځونه یې نه ماتېدونکي دي او نور...

فلســطیني ولس بله قرباني د خپلو خلکو لپاره ورکړه او هر هغه اســیران یې ازاد کړ چې د خدای اسرې ته پراته وو.

باید وویل شي، چــې د یهودو په زندانونــو کې پراته دا کمزورې بندیان زموږ و ستاسو د غیرت او ناموس برخه وه او باید ازاد شوې وای.

دا چې د غزې په څلورو کې ښــایي یوه برخه ســالمه او یا نیمه ســالمه پاتې وي، د پاتې درې برخو د ابادولو لپاره یې څه کولی شو؟ اســلامي نړۍ باید د فلسطین د ابادۍ طرحه په خپل لاس کې واخلي او له افغانستان څخه نیولې تر ټولو اسلامي هېوادونو پورې باید د دغې ښکلې، خو جګړې په شــدت سره ځپلې سیمې په ابادولو کې برخه واخلي.

د فلسطین قضیه یوازې د یوه ملت موضوع نه ده؛ بلکې دا د نړیوالو حقونــو، عدالت او بشري کرامت لپاره یوه اساسي ازموینه ده.

ټرمپ خپلې زهرجنې څرګندونې په داســې وخت کې ترسه کړې چې غزه کې د تېرو ۱۵ میاشتو جګړې د غزې کــور په کور د غم په ټغر کېنول او داســې کورنۍ به نه وي، چې یو یا څو غړي یې له لاسه ورکړي وي.

اوس وخت کې همغه مهاجر چې د صهیونېست رژیم د بریدونو له لاســه له غزې وتلي وو، ورو ورو خپلو سیمو ته راستنېږي

که څه هم د غزې اوسېدونکي غم لړلي دي، خو تر اوربند وروسته یې د حماس او نورو فلسطیني مجاهدینو هرکلی ښــه په کلکه وکــړ او لارو کوڅو کې یې د فلســطیني مجاهدینو په ملاتړ نارې ووهلې او اسرائیلو او ملاتړو ته یې وښودله، چې سلګونه کیلویي بمونه یې شور، چغه او همت نه شي ورخاموشولی.

غزه کې تر ۱۵ میاشتېنۍ خونړۍ جګړې او د صهیونست اشغالګر رژیم پر وړاندې د فسطیني مجاهدینو تر اوږدې مبارزې او د فلسطیني وګړو تر کلکې حوصلې وروسته، بلاخره د نتانیاهو په مشرۍ اسراییلي رژیم اوربند ته غاړه کېښــودله او د دغــې جګړې په پیل کــې یې چې کومې موخې ټاکلې وې، د هغو په ترلاسه کولو کې پاتې راغلل. اشــغالګر رژیم ویلي وو، چې حماس به په بشپړ ډول له منځه وړي، خو نن حماس لیدل کېږي، چې د خپلو خلکو په منځ کې د اسرائیلو د ماتې جشن نمانځي او اوچت سره په غزه کې ګرځي.

لوســتونکو ته باید یوه موضوع جوته شي چې فلسطین ډېره مبارکه خاوره ده، فلسطین د پیغمبرانو زېږنځای دی. داســې پیغمبران چې د خپلو قومونــو او روزنې لپاره یې کلونه کلونه زحمت وګاله او دوی یې د الله ج وحدانیت ته رابللي دي.

د ګڼو پیغبرانو سربېره دې خاوره کې بې شــمېره صحابه کرام هم اوســېدلي او زیاتره یې په همدې خاروه کې دفن شوي دي.

د بېلګې پــه توګه عباده بن صامت، ابوریحانه شــمعون انصاري، اوس خرجي، ذوالاصابع تمیمی او نورو صحابه کرمو رضی الله عنهم یاولی شــو. دغــه راز یاده خاوره د ګڼــو عالمانو د خاپوړو خاوره هــم ده. د بېلګې په توګه امام شافعي صاحب، حافظ بن حجر عسقلاني صاحب او نورو په دې خاوره کې خاپوړې کړې دي.

د فلســطین مخینه او لرغونتیا اوږدو کلونو ته رسېږي او له مصر وروســته ښایي په اســلامي هېوادونو او خلیجي هېوادونو کې له ټولو زوړ تاریخ لرلو امتیاز هم دا خاوره په خپل لاس کې واخلي.

فلســطین د خپل جیوپولوټیک موقیعت لــه اړخه هم د ځانګړې پاملرنې وړ دی. دا هېواد د اســیا او افریقا لویو وچو تر منځ د یوه پل حیثیت هم لري.

پــر دې سربېره دا هېواد په داســې یو ارزښــت لرونکي موقیعت کې پروت دی،چې د مدیترانې د سره سمندرګي سره د عربي ټاپو وزمې نښــلون تر زیاتې اندازې اسانوي. حتی ویلی شــو،چې دغه هېواد د اســیا، افریقا او اروپا ترمنځ مثلث جوړوي. فلسطین د سویس کانال څخه درې سوه کیلومتره واټن لري او د عقبې بندر په واسطه له سره ســمندرګي پورې نښلي، نو ځکه تل د استعمارچیانو د پام وړ ګرځېدلی دی. فلســطین پرېمانه کانونه او د کښــت وړ ځمکه لري، چې بدبختانه اغېزمنه استفاده ترې نه ده شوې.

په فلسطین کې د قدس(بیت المقدس) شتون هغه ویاړ او دیني ارزښت دی چې له فلســطینه به مسلمانان دفاع ته هڅوي او اړ کوي.

بیت القمدس د مسلمانانو لومړۍ قبله او هغه ښار دی چې اسمانونو ته د پورته کېدو پر مهال د رسول اکرم صل الله علیه وسلم کوربتوب یې کړی دی. دا ځای د پیغمبر صل الله علیه وسلم د اسرا او معراج ته د تګ د ځمکني سفر وروستۍ تمځای و.

د اقصی جومات د مســلمانانو لومــړۍ قبله، د موحدانو دویم جومات او د مسلمانانو درېیم مقدس حرم دی.

بایــد یادونه وکړو چې انګلیس، فرانســې او وروســته امریکا غوښــتل چې اسراییل د خپلو شومو موخو لپاره د یوه مصنوعي هېواد په توګــه رامنځته کړي،نو په دې اســاس پرېکړه وشوه چې صهیونســتان باید فلسطین ته ډله ییز وکوچېــږي. فلســطینیان ددې پرېکړې منلو ته په هېــڅ ډول نه و چمتو. همدا علــت و چې په لکونو فلســطینیانو په پاڅون لاس پورې کړ او په بیت المقدس کې یې د بریتانیې په لاس جوړې شوې لسګونه ودانۍ د اور خوراک کړې. ځای ځای لاریونونو دغه هېواد کې عمومــي او لوی پاڅون ته لاره هواره کړه. همدغه علت و چې یو کال وروسته په یافا ښار کې انقلاب زور ونیو. یهودي ځواکونــو او انګلیسي اشــغالګرو له ۱۵ ورځو پرلپسې هڅو وروسته وتوانېدل چې ددغه انقلاب اور مړ کړي. له یاد انقلاب وروسته په یافا ښار او پر فلسطینیانو بریتانیانو ډېر سخت بندیزونه ولګول او تر فشار لاندې یې ونیول چې بیا په کلونو کلونو یې په فلسطینیانو کې د پاڅون شیمه مړه کړه. په ۱۹۲۹ کال کې د یهودو کډوالو او د بیت المقدس د مسلمانو استوګنو ترمنځ ډېرې سختې جګړې وشوې. دغه شــخړې د براق انقلاب په نامه هم یادېږي.یهــود د وخت د کفــري زبرځواکونو پر ځای لومړی په فلســطین کې نوک او بیا یې ســوک ځای کړ او وخت په وخت یې خپل اشغال ته پراختیا ورکړه چې بالاخره دا دی اوس یې فرعوني ملاتړي د ډله ییز مهاجرت او د خپل کور د پرېښودو ګواښونه کوي.

# زیان‌های رسانه‌های فاسد و مبتذل

**مولوی نورالحق مظهری**

رسـانه‌ها، چه تصویری، چه صوتی، چه چاپی و چه اجتماعی، همه وسایلی برای نشر اطلاعات هستند که هم می‌توان از آن‌ها استفاده درست کرد و هم استفاده نادرست. اما زمانی که رسانه‌ها فاسد شوند یا به دست افراد ناأهل بیفتند، فسادهای زیادی از آن پیدا می‌شود و زیان‌هـای بزرگی به جامعه وارد می‌کند. برخی از این زیان‌های عمده را در زیر بیان می‌کنیم:

**فساد اخلاقی:**
رسـانه‌های مبتذل باعث گسترش فسـاد اخلاقی در جامعه می‌شـوند، به ویژه جوانان را به فساد اخلاقی معتاد می‌کنند. در نتیجـه، ارزش‌های اخلاقی نادیده گرفته می‌شـود و مردم به سوی بی‌بندوباری و فحشا سوق داده می‌شوند. نمونه تاریخی آن امپراتوری روم اسـت که به دلیل نمایش‌های مبتذل و انتشار فحشا به فسـاد اخلاقی گسترده‌ای دچار شد. در عصر حاضر، دوره قبل از امارت نمونه‌ای از این امر می باشد، جایی

**مسمومیت فکری و سیاسی:**
رسـانه‌های ناصالح افکار مردم را تخریب می‌کنند و سـبب انحراف فکری و سیاسی در جامعه می‌شوند. در نتیجه، اعتقادات اسـلامی و باورهای فطری مردم تضعیف شـده و از هویت اسلامی و سیاست اسلامی بیگانه می‌شـوند. نمونه‌ای از این امر، تبلیغات اتحاد جماهیر شوروی کمونیسـتی در آسیای میانه بود که محبت به اسـلام و نظام اسلامی را از دل مردم بیرون کرد. به همین دلیل، هرچند روسیه به لحاظ نظامی از کشورهای آسیای میانه خارج شده، اما از نظر فکری و سیاسی هنوز بر آن‌ها مسلط است.

**افزایش خشونت اجتماعی و جرایم:**
رسانه‌های نادرسـت باعث افزایش میزان جرایم در جامعه می‌شـوند، زیرا برنامه‌هـا و سریال‌هایی که منتشر می‌کننـد، به نوعی روش‌هـای ارتکاب جرم را به مردم آموزش می‌دهند. بسـیاری از جرایم مانند

انتشـار فحشا و موسیقی‌های مبتذل در میان جوانان بود کـه آن‌ها را به سرگرمی‌های بیهـوده معتاد کرد و حـس جهـاد و فـداکاری را از آنـان گرفت. در عصر حاضر، برخی رسـانه‌ها با پخـش برنامه‌های نامناسب، فیلم‌های فاسد و سوءاستفاده از شبکه‌های اجتماعی، وجدان، عقل و اسـتعداد علمی جوانان را نابود کرده‌اند.

**ابزار جنگ فکری دشمنان:**
دشـمنان اسـلام همواره تلاش کرده‌اند کـه از هر وسیله‌ای برای جنگ فکری علیه اسلام و مسلمانان اسـتفاده کنند، که یکی از این ابزارها رسـانه‌های فاسد اسـت. آن‌ها از طریق رسانه‌ها، تهاجم فکری و فرهنگی خود را پیش می‌برنـد و برای این کار، فعالیت رسانه‌ای را به عنوان اولین انتخاب خود قرار می‌دهند. این رسـانه‌ها به طور آگاهانه یا ناآگاهانه به ابزار جنگ فکری علیه اسـلام تبدیل می‌شوند و تبلیغات گسـترده‌ای را علیه آن انجام می‌دهند. نمونه بارز آن، تهاجم فکری‌ای اسـت که هم‌زمان با حمله نظامی امپراتوری‌های کفری به کشـورهای اسلامی از طریق رسانه‌ها انجام شده است.

**تخریـب و توهین بـه ارزش‌هـای دینی و فرهنگی:**
رسـانه‌های مبتذل از طریق تبلیغات و دروغ‌پردازی تلاش می‌کنند کـه ارزش‌های دینـی و فرهنگی را تخریب کـرده و مورد اهانت قـرار دهند. مطالعه تاریخ رسانه‌ها نشان می‌دهد که رسانه‌های نادرست همواره سعی کرده‌اند که اهمیت مقدسات را در نظر مردم کم‌رنگ کنند. آن‌ها شـخصیت‌های اسلامی را بـا عناوین ناپسـند یاد کرده‌اند، کـه نمونه بارز آن، برچسب «تروریسـت» به مجاهدین و متهم کردن علمای دینـی به سـاده‌لوحی و شرارت اسـت. در دوران خلافت عثمانی، زمانی که مسـلمانان در حال پیشرفـت بودنـد، یهودیان و منافقین با اسـتفاده از رسـانه‌ها تبلیغات منفی علیه رهبران خلافت انجام می‌دادند و شایعات بی‌اساسی را در میان مردم منتشر می‌کردند. چنانچه سلطان عبدالعزیز را متهم کردند و مـردم را بر علیه او تحریک نمودند تا اینکه او را معزول کردند و بعدا به شکل مرموز او را به شهادت رساندند.

**ایجاد فاصله بین دولت و ملت:**
رسـانه‌های دشمن اسـلام همواره تلاش می کنند که بین نظام حاکم اسـلامی و مردم فاصله ایجاد کنند. آن‌ها همواره نقاط ضعف نظام را برجسـته کرده و دستاوردهای آن را پنهان می‌کنند. گاهی اوقات، این رسـانه‌ها برخی تحلیل‌گران منحرف را تحت عنوان «کارشناسان سیاسی» دعوت می‌کنند تا با تحلیل‌های نادرسـت، مردم را فریب داده و علیه نظام تحریک کنند.



که آزادی‌های رسانه‌ای منفی، مردم را به انواع فساد و بی‌بندوباری کشاند.

**برهم خوردن نظام خانوادگی:**
انتشـار محتوای نامناسب توسط رسـانه‌های فاسد، نظام خانواده را مختل می‌کند، زیرا چنین رسانه‌هایی برنامه‌هایی منتشـر می‌کنند کـه پیوندهای حقوقی میان اعضای خانواده را از بین می‌برد. این امر باعث ایجـاد نفرت و کینه بین پدر و پسـر، برادران، زن و شوهر و سایر خویشاوندان می‌شود. نمونه بارز آن جوامع غربی هسـتند که به دلیل عدم رعایت حقوق خانوادگـی، میزان طلاق و فروپاشـی نظام سـنتی خانواده در قرن نوزدهم و بیستم افزایش یافته است.

آدم‌ربایی، که سـابقه طولانی دارد، در کشـور ما در دوران جمهوریـت افزایش یافت، زمانی که مردم به تلویزیون‌های غیرمجـاز و سریال‌های خارجی روی آوردند و روش‌هـای آن را یاد گرفتند. نمونه دیگر آن فیلم‌های مبتذل هالیوود است که از دهه ۱۹۲۰ به بعد موجب افزایش خشونت و جنایات در جوامع غربی شده است.

**تباهی و انحراف نسل جوان:**
رسـانه‌های فاسـد، جوانان را از اصلاح، پیشرفت و دانش دور کرده و به سـوی شهوت‌پرستی و انحراف اخلاقی سـوق می‌دهند. تاریخ‌نـگاران معتقدند که یکی از عوامل سقوط حاکمیت مسلمانان در اندلس،

## ننګرهار کې د وچ ...

پراخـوالي او ۱۰ متره لوړوالي ، چې د ۷۸ زره ۳۳۲ متره مکعب اوبو زېرمه کولو وړتیا ولري.یاده دې شي، چې په دې پروژې کې سـلګونه کسانو ته د کار زمینه برابره شوې، چې د سیمې خلکو اقتصاد ته به مثبت بدلون ورکړي.

## میدان وردګو کې د وسپنې ...

وسپنه په نړیوالو معیارونو برابره پروسس شي، چې په ورځني ډول به ۱۲.۵ ټنه تولید ولري او زرګونه کسانو ته به په کې د کار زمینه برابره شي.
په ورته وخت کې د میدان وردګو والي قاري بختیار معاذ د یادو پانګوالو د هڅو ستاینه وکړه او ویې ویل، چې د ولایت مقام او اړونده ادارې به د دوی د پانګونې لپاره هر ډول اسانتیاوې برابرې کړي او همکاري ته چمتو دي.
د یادونې وړ ده چې په دې وروستیو کې د ولایت مقام په هڅو ګڼ شمېر پانګوال دې ولایـت ته راجذب شـوي او په میدان وردګو کـې د بېلابېلو برخو تولیدي فابریکې جوړې شوې دي.

## فراغت ۲۵۰ منسوب جوان ...

آقای مجاهد گفته اسـت: اکنون مسـؤلیت بزرگ به شما سـپرده می‌شود که همانا خدمت به مردم می باشـد بناً همیشـه بیدار، هوشیار و با هوش باشید. از تمامیت ارضی مردم و کشـور خود با عزم راسخ و ایمانی محافظت نمائید. این در حالی است که روند آموزش و مسلکی‌سازی نیروهای دفاعی و امنیتی کشور ادامه دارد.

## تخار کې ګنې ...

لاسي بمونه، د روسي پیکا ۴ بکسـه مرمۍ او ګڼ شمېر زغروال او غیر زغروال تجهیزات ترلاسـه شوي دي.امنیتي او دفاعي ځواکونو د تخار ولایت ولسونو ته ډاډ ورکړی، چې دوی به په هر ډول حالاتو کې د خپلو هېوادوالو د سر، مال او عزت سـاتنه کوي.د ویلو ده، چې د اسلامي امارت امنیتي او دفاعي ځواکونو تل د خپلو هېوادوالو د هوسـاینې په موخه شپه او ورځ پر ځان یوه کړې او په ټول افغانستان کې یې امنیت ټینګ ساتلی دی.

## ۵۳۵ تنه منسوبین ...

دوی ته د پیروي، د سرحدي پولو سـاتنې او د تقوا سپارښتنه کړې ده.
هېره دې نه وي دغو ځواکونو ته د څلورو میاشـتنیو مسلکي زده کړو په بهیر کې د ټوپوګرافي، توپچي، درنو او سپکو وسلو کارول، سرحدي قوانین او یو شـمېر نورو برخو کې د مسـلکي اسـتادانو له لورې نظري او عملي زده کړې ورکړل شـوې دي. یـاده دې شي چـې د ۵۳۵ فارغانو سره هممهالـه د عبدالله بن مسـعود رضي الله عنه د ځګـره ییزو ګېو زده کـړو قوماندانۍ د عمومي خدمتونو ښوونځي د عامو چارو ۲۳ آمرین هم فارغ شوي.

## جوزجان کې پر ۲۰ کیلومتره ...

ته وویل، چې یاد سـړک ۲۰ کیلومتره اوږدوالی، ۷ متره سـور او ۲۰ سـانتي متره پلنوالی لري چې د شـېرغان ښـاروالۍ له پراختیایي بودیجې پلي کېږي. نوموړي زیاته کـړې، چې د یادې پروژې په چوکاټ کې بـه ۱۵ پلچکونه هم جوړ شي.د جوزجان والي قاري ګل حیدر شـفق د یادې پروژې د پرانیسـتلو په مراسـمو کې وویل، چې د اسـلامي امارت مسـوولین هڅه کوي، د ښاري خدمتونو په وړاندې کولو سره د خلکو لپاره زیاتې اسانتیاوې برابرې کړي او د هغوی ستونزې هواري کړي.د شبرغان یو شمېر اوسېدونکې د ښاري ماسټر پلان له مخې د نویو سړکونو د جوړېدو او پر دغو سړکونو د کېرپاچولو د پیل ستاینه کوي او له ځایي مسوولینو غوښتنه کوي چې د دوی په سیمو کې ورته تولګټې پروژې لا ډېرې شي.

Shariat
Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Saturday 08 February 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 677


# د دولتي کارکوونکو معاشونه سر له ننه پیلیږي

د اسلامي امارت ویاند، ذبیح الله مجاهد وایي د روان لمریز کال د مرغومي میاشتې د دولتي کارکوونکو د معاشونو وېش به سر له ننه پیل شي.

ښاغلي مجاهد پر خپل اېکس لیکلي، د معاشونو د توزیع د بنسټ تنظیم لپاره به په لومړۍ ورځ د بهرنیو چارو، حج او اوقافو، کډوالو چارو، صنعت او سوداګرۍ، ملي دفاع، لوړو زده کړو، د کانونو او پټرولیم او مالیې وزارتونو معاشونه او څلورو ورځو کې به بیا د نورو وزارتونو او ادارو معاشونه ووېشل شي.



مولوي ذبیح الله مجاهد لیکلي چې د ټولو وزارتونو او دولتي ادارو د کارکوونکو معاشونه به په ۴ ورځو کې ورکړل شي.
یاده دې شي چې اوسمهال شاوخوا یو میلیون او ۴۰ زره تنه مامورین په بېلابېلو دولتي ادارو کې پر کار بوخت دي چې معاشونه یې د مالي کال د پای ته رسېدو په سبب ځنډول شوي وو.




## ترکیې او مالیزیا هم د ټرمپ څرګندونو ته غبرګون ښودلی



له مصر، فرانسې او اردن وروسته د ترکیې او مالیزیا هېوادونو هم د غزې پر وړاندې د ټرمپ وروستیو څرګندونو په تړاو تند غبرګونونه ښودلي دي. ترکیې د پارلمان رییس نومان کورتولموش د امریکا د منځني ختیځ پالیسۍ په ځانګړي توګه د غزې په تړاو د ټرمپ پر وروستي پلان سختې نیوکې کړې او ویلي دي، چې په ویتنام، افغانستان او عراق کې مات شوي کسان حق نه لري، چې فلسطینیان بلې فاجعې ته داخل کړي. دغه راز د مالیزیا د بهرنیو چارو وزارت په یوې خبرپاڼه کې ویلي، چې د فلسطینیانو د جبري بې ځایه کېدل، قومي تصفیه، له نړیوالو قوانینو او د ملګروملتونو له ګڼو پرېکړه‌لیکونو سرغړونه ده.

## ټرمپ یو ځل بیا د ایران په اټومي وسلو نه جوړولو ټینګار کړی



د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ یو ځل بیا د ایران په اټومي وسلو نه جوړولو ټینګار کړی او ویلي یې دي، چې د یوې نوې هوکړې د ترلاسه کولو لپاره باید ژر تر ژره اقدام وشي. ټرمپ په خپل ټروت سوشیل شبکه کې لیکلي، چې امریکا غواړي له تهران سره د منلو وړ هوکړه وکړي، چې ایران ته به په سوله‌ییزه توګه د پرمختګ او سوکالۍ د ترلاسه کولو اجازه ورکړي. د امریکا د ولسمشر په وینا، که یاده هوکړه بشپړه او د دواړو له لوري لاسلیک شي، نو په منځني ختیځ کې به پراخ جشنونه ونیول شي. د ویلو ده، چې لویدیځ هېوادونه په ځانګړې توګه امریکا ادعا لري چې ایران غواړي اټومي وسلې جوړې کړي، خو تهران په اټومي برخه کې خپل پروګرام سوله‌ییز اهداف بولي.

## د پخوانۍ لومړۍ وزیرې شیخ حسینې کور ته اور اچول شوی

په بنګله‌دېش کې زرګونو لاریون کوونکو د یاد هېواد مخکینۍ لومړۍ وزیرې شیخ حسینې کور ته اور اچولی او ویجاړ کړی دی. اعتراض‌کوونکو وروسته له هغې د مخکینۍ لومړۍ وزیرې کور ته اور واچوه چې نوموړې پر ټولنیزو رسنیو یوې ویډیو کې له خپلو پلویانو غوښتنه وکړه چې د لنډمهالي حکومت پر وړاندې ودرېږي. شیخ حسینا د تېرکال اګست کې د لاریونونو په پایله کې له ۱۵ کلونو واکمنۍ وروسته واک پرېښود او هند ته وتښتېده. د بنګله‌دېش په پلازمېنه ډهاکه کې دا کور د حسینې د پلار شیخ مجیب‌الرحمن و چې په ۱۹۷۱ کال کې یې له پاکستان څخه د خپلواکۍ مشري کوله. مجیب‌الرحمن د بنګله‌دېش هېواد بنسټګر بلل کېږي. نوموړی په ۱۹۷۵ کال کې ترور شو او حسینې بیا دا کور پر موزیم بدل کړ.



## کندهار کې ۱۵۰۰۰ کندې اېستل شوي

د کندهار د نېش ولسوالۍ په بېلابېلو سیمو کې د ۴۰زره امریکایي ډالرو په ارزښت د اوبو د زېرمې ۱۵ زره کندې کېندل شوي دي.
د اوبو ذخیره کولو دغه پروژه د یاد ولایت د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست په هڅو، د خوراک او کرنې نړیوال سازمان په مالي ملاتړ او د بشري خیریه موسسې په تخنیکي او مالي ملاتړ کېندل شوي. ددغو کندو د کیندنو پرمهال ۲۰۰ تنو ته د کار زمینه برابره شوې وه.
د کندهار کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست ویلي، دا اداره هڅه کوي چې د کرنې او مالدارۍ سکتور ته وده ورکړي او بزګرانو ته د کار زمینه برابره کړي.
له دې وړاندې هم یاد ریاست په بېلابېلو ولسوالیو کې ورته پروژې پلې کړې چې د بزګرانو او مالدارانو د ستونزو په هوارولو کې اغېزمنې تمامې شوې دي.



## پنجشېر کې د ګڼو سړو خونو چارې بشپړې شوې

د پنجشیر د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي، چې سږ کال یې په دغه ولایت کې د کرنیزو محصولاتو د ساتنې لپاره د لسګونو سړو خونو د بیارغونې چارې بشپړې کړې دي.
د پنجشېر د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رییس ویلي، چې دغه سړې خونې د کرنیزو محصولاتو له ضایع کېدو مخنیوی او د کروندګرو د عایداتو له زیاتوالي سره مرسته کوي. د نوموړي په خبره دا سړې خونې په مرکز بازارک او ۷ ولسوالیو کې ګټې اخیستو ته سپارل شوي. نوموړي ټینګار وکړ چې د دغه ولایت د کرنیزو محصولاتو د تولید په پرتله د دغو سړو خونو شمېر کافي نه دی او د کرنې ریاست هڅه کوي چې په راتلوونکي کې د پنجشېر په بېلابېلو سیمو کې نورې سړې خونې جوړې کړي.

## ۵۳۵ تنه منسوبین له مسلکي زده کړو فارغ شول

د افغانستان اسلامي امارت د ملي دفاع وزارت په خپل رسمي اېکس ویلي چې د جګړه‌ییزو ګډو زده کړو قوماندانۍ د سرحدی فوق العاده زده کړو څخه ۵۳۵ تنه ځوان منسوبین فارغ شوي دي.
په دې مراسمو کې د تعلیماتو او پرسونل معینیت مرستیال مولوي باز محمد حمیدي، د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د جګړه‌ییزو ګډو زده کړو قوماندانۍ درستیزوال مولوي شیر احمد محمدي، مسئولینو او ګڼو منسوبینو برخه اخیستې وه. د تعلیماتو او پرسونل معینیت مرستیال مولوي باز محمد حمیدي دغو فارغ شویو نظامیانو ته په خپله وینا کې . . . ۳مخ




## انتشار گاز ناشی از سوخت زغال سنگ در کاپیسا جان دو تن را گرفت



مقام‌های امنیتی ولایت کاپیسا می‌گویند، در نتیجه انتشار گاز ناشی از سوخت ذغال سنگ در این ولایت دو تن جان باخته و یک تن دیگر روانه شفاخانه شده است. عبدالفتاح فایز، سخنگوی قوماندانی امنیه ولایت کاپیسا با نشر خبرنامه‌ای این موضوع را تایید کرده است. به گفته آقای فایز، این رویداد در «دره پچغان» ولسوالی نجراب ولایت کاپیسا اتفاق افتاده و قربانیان برای گرم کردن خانه‌ای‌شان از ذغال سنگ استفاده می کردند. فایز گفته که جان باختگان این رویداد طبیعی زنان ۱۷ و ۳۵ ساله هستند. سخنگوی قوماندانی امنیه ولایت کاپیسا دلیل وقوع این رویداد را بی‌احتیاطی در استفاده از گاز بوده است.

## جوزجان کې پر ۲۰ کیلومتره سړک د کرېړاچولو چارې پیل شوې

د جوزجان ولایت د شبرغان ښاروالۍ مسوولین وایي، چې د یاد ولایت په مرکز شبرغان ښار کې د ۹.۵ میلیونه افغانیو په لګښت پر ۲۰ کیلومتره سړک د کرېړاچولو چارې پیل شوې دي. د شبرغان ښاروال مولوي حبیب الله قانع باختر اطلاعاتي آژانس . . . ۳مخ

